زمکه ځما ده آسمان ځما دے
که ته ځما ئې جهان ځما دے

# دَ اللّٰه مِینَه


لیکونکے:

نورالامین (آمین) اخونزاده

ایڈوکیٹ ڈسٹرکٹ کورٹس مردان

مستقل پته: محلہ بابی خیل اسماعیلہ ضلع صوابی


دَ کتاب حاصلولو یا رابطے دَ پاره:
0300-5738133


سٹی سکرین پرنٹر اینڈ پرنٹنگ پریس

نور خان مارکیٹ نیو اڈہ مردان فون : 0937-864188

د خپلو لوستونکو په خدمت کښې څو سطرونه لیکم۔ څما دا کتاب د لوستو نه پس تاسو خپل تأثرات ماته په لاندینئی پته رالیږلے شئی۔

نورالامین ایډوکیټ مردان

مستقل پته۔ محله بابی خیل اسماعیله ضلع صوابی

دا څما رومبے کتاب دے۔ لهٰذا که څه غلطئی پکښې وی نو د هغے معزرت کوم۔ او په پورتنئے پته رابطه اوساتئی۔ چه دد اسے غلطئی امکان آئنده پاتے نه شی۔

انشاء الله څما کوشش دے چه د خپلو لوستونکو دپاره بل کتاب چاپ کوم د بل کتاب نوم "اسلامی انقلاب" دے اُمید لرم چه په خپلو دعاګانو کښې به مې نه هیروئے۔

په ډیرو دُعاګانو سره ستاسو خوږ ورور

نورالامین آمین اخونزاده

# دیباچه

د محترم نور الامین صیب د شاعرۍ دلوستلو نه پس ماته معلومه شوه چې هغه د حقوق اللّٰه سره سره حقوق العباد هم کوی۔ په شاعرۍ ئې زیات ترمذ هبي رنګ غالب دے۔

د غسې د دے پښتون شاعر شاعرۍ د خوند او نصیحت هغه خوږې خبرې دی ۔ چې په لوستلو یا اورېدو سره په زړه او ذ هن بوج نه غورزوی۔ بلکې سکون ورته وربخښی او د تورو تیارونه یې رڼړ اپله بیائی۔

په درناوی
غمګین معیارؔ

علی حیدر جوشی (مرحوم) معزز انسان او ښه شاعر د (اسماعیله) کلی اوسېدونکې او د اسماعیله نوم روښانه کونکې وو او ښه اُستاد او ښه شاعر وو۔ مېلمه دوست وو۔ او څه فخر کوم چه څما د نېکه شاګرد هم وو۔ د اللّٰه تعالٰی نه دُعا ده چه اللّٰه تعالٰی دې د هغوی جنّت الفردوس نصیب کړی آمین

## شفیق ځلمے یو ښه اُستاد

شفیق ځلمے د اسماعیله کلی اوسیدونکے دے۔ یو ښه شاعر او ښه اُستاد دے ۔ تیچنګ لائن سره ئے تعلق دے۔ د دوی د اِسلام د پاره قربانئے د هیریدو نه دی۔ دوی د اِسلام ډیر خدمت کوی د دے نه علاوه د شفیق صاحب ډیر شاګرد ان دی چه په مختلفو شعبو د اِسلام خدمت کوی۔

شفیق صاحب همیشه د حق او د صداقت جنګ کړے دے ځما دُعا ده چه اللّه تعالی دې د شفیق صاحب په عمر کښی برکت واچوی۔
آمین

## غمګین ماپار یو ښه شاعر

یو مخنتی اِنسان او ښه شاعر غمګین ماپار هم دے۔ ځماپه رهنمائے کښی د غمګین ماپار ډیره حصه ده دوی د ماپار ضلع مردان اوسیدونکی دی۔ یو ښه لیکوال دے او ځما اُستاد هم دے۔ دوی د قوم همیشه خدمت کړے دے۔ او په مختلفو وختونو کښی ئے د قوم د شاعرۍ په ذریعه رهنمائی کړے ده۔
ځما دُعا ده چه اللّه تعالی دې د دوی په عمر کښی برکت واچوی ۔
آمین

# حمد

لویه ربه نور د زمکے د آسمان ئے
ته عالم ربه په کون هم په مکان ئے
قدرتونه د هر څیز کښې نمایاں دی
ستا صفت دے چه کارساز د کل جهان ئے
دا ارض و سمٰوٰت دې ټول تابع دی
ته مالك د وره ولو د باران ئے
نعمتونه دې بسیار دی شمیر ئے نشته
ته د واړه مخلوقات روزی رسان ئے
اے کریمه د کرم دې څه حد نشته
وسعت کښې مهربانه په اِنسان ئے
تا د کتے نه ده اوبنه پیدا کړے
وسعت کښې مهربانه په اِنسان ئے
هم دغه سمندر ورته عذاب شو
حقیقت کښې ته قهار په نافرمان ئے
شپے او ورځے اوږدوے او لنډوے ته
ته بادشاه د صفتونو په لوئے شان ئے
د خوږو اوبو نهرونه دې کرم دے
په تازه تازه هوا ته حکمران ئے
نافرمانو له دوزخ دې تیار کړے
مومنین له په وعده د جنّتان ئے
خوږ ملګرے په دنیا په آخرت ئے
په صفت کښې ته رحیم کریم رحمان ئے

عقلمند دي په رضا پسې تلاش که
په خپل کرم ته مئېن په مسلمان ئې
فضیلت دي لوی ورکړے دے اُمت ته
په خپل کرم کښې بے شانه عالیشان ئې
لویه خدایا سوال کوم د محبت ستا
په دعا مې ته خبر په هر زمان ئې
د اِنعامونو حد دې نشته دے وهابه
تجربان ته په جنّت کښې د عېنان ئې
تا دی حورے پېدا کړے بے حسابه
ته خالق ئې ته مالك ئې ته منّان ئې
تعریفونه دې بے شمار دی ذوالجلاله
حقیقت دے لویه ربه چه سُبحان ئې
څه آمینؔ ستا د لوی کرم طلبګار یم
ته په اصل کښې بخښونکے مهربان ئې



# نعت

په نبیانو اولین هم آخرین دے
هم صفت کښے رحمت للعٰلمین دے
تعریفونه په قرآن ئے الله کړی
ډیر مئین په انسانانو مرسلین دے
کائنات د ده له مخه تول پیدا دی
په لقب کښ دے صادق او هم امین دے
دی کذاب چه دعوٰی د نبوّت که
رب ستائیلے په خاتم د نبیین دے
چه تیرے د کفر ختمې په جهان شوے
په رښتیا ځکه رحمت د عالمین دے
په همهٔ انسانانو کښ بهتر دے
چه ورکړے ورته رب دین متین دے
حد د صبر وکرم د نبیؐ نشته
د طائف په ظالمانو صابرین دے
ډیر عزت او کامیابی ئے ده سیرت کښ
د نجات په بشارت د مومنین دے
په فیضان د مصطفٰی به لا څه وائے
سعادت ئے حاصل کړے صالحین دے
په رنړا باندې روښانه ټول عالم شو
چه بریښنا د دے جهان آفرین دے
چه خواږه خواږه ملګری ورسره وو
خوږ ملګرے د انصار مهاجرین دے

نمر سپوږمئی او آسمانونه ئے تابع دی
چه مطيع د ذوالجلال په پوخ يقين دے
په نبيانو کښ ئے لوېه مرتبه ده
چه شفيع هم په قيامت د مسلمين دے
دے په مونږه ډېر مئين د مور او پلاره
دا شفيع هم ډېر مئين په عابدين دے
سيرت ئے شحصی نه دے عالمی دے
ښکاره شوے په کتاب المستبين دے
مقام محمود وعده الله ورسره کړے
په شفاعت کبریٰ باندې مبين دے
سوال کوونکے ترے د جام کوثر څه يم
خپل اُمتی ئے دعاګو نور الامين دے



# مسلمان ته

ته روان په لوئے سفر ئے شه تیار
د غفلت په خوب اوده ئے شه بیدار
خوشحالئی ئے چه په مثل سمندر دے
ته د یو څاڅکي په طلب ئے طلبګار
ته ښاوره ئے په ښاوره قربانیږي
عقلمند به همیش مرګ له وی تیار
د مرګ څلګئے ناساپه به شروع شی
خدائے دے نه که څوک ناکامه ګرفتار
لوئے نعمت خو مور او پلار دی که پوهیږي
دُعا واخله په دنیا د مور او پلار
بس یو څو ګزه کپړه به دي کفن شی
که بادشاه ئے که غریب ئے که مالدار
تل صحبت د صالحانو ښه اثر که
رفیق نه شے ته د بدسرئ په لار
دا دهوکه ده وهر څیز لره فنا ده
اسیر نه شي د دُنیا په دے بازار
نن خندا کانے خوشحالئی کړے
صبا چاپیر به درنه شی د غم ناتار
چه دنیا پسے طلب کړه سرګردانه
دغه زړه په حقیقت کښې وی بیمار

که الله سره تعلق دے خپل صحیح کړو
بیا غالب به همیشه ئے په اغیار
خپل زړګے د الله مینه باندے رنګ کړه
که شي لکه منصور غوندے په دار
عاقلان دي غافلین په خپل ژوند نه شی
رب ورکړے ورته دا ګهړئی اختیار
چه ئے ځان د خپل خالق مینه کښ روك کړو
اناالحق کړلو منصور غلام په دار
رنړاګانے به په هر لور استقبال کړی
آخرت کښ چه مؤمن باندے شی شمار
لوئے منزل دے ستا په وړاندے ځان خبر که
مسافرو اعلان کیږی وار په وار
دا وعدے ئے حقیقی او دائمی دی
پوخ یقین سره د رب شه تابعدار
که د یو په غلامئی کښ په رښتیا شے
شے به خلاص د غلامئی نه د هزار
په بندګئی کښ د خپل رب شه
دواړه جهانه بیړه کړی به درله پار
که لوئی ورځخه بنائی یو الله دے
انسان بنکته په غرور شی راګزار
څه په نیت او عمل دواړو کښ خالص شه
ضائع کیږی حسنات د ریا کار

قاتل خو د پورا عالم قاتل وی
تہ مہ شہ پہ صفت کښې د ښامار
بازار نہ دے د آزار نہ چا موندلے
ځان ساتہ چرتہ مظلوم نہ شی آزار
سیئات بہ دې بدل پہ حسنات کړی
لوے کریم دے او رحیم دے او غفّار
دا کانړه، رانده، ګونګیان نہ دی نو څہ دی
چہ قرآن تہ ئے شا کړے دہ پہ جار
احمقان دی واړه هوښیار نہ دی
قارون، شداد، هامان غوند مردار
پہ چاهت دے د خپل رب کہ ځان قربان کړو
ګوره شے پہ دواړه جهانہ عزت دار
پہ چاهت دے د خپل نفس کہ ورقربان شوے
ګوره شے بہ تول عالم کښې خواروزار
نصیحت کړم مسلمان تہ وروړ ئے بولم
ځکہ څہ لیکم سادہ بادہ اشعار
د رحم پہ چپو کښې بہ مې انغاړی
څہ ہم آمینؔ ئے د لوئے کرم اُمیدوار

# الله او مسلمان

دا دروغ دی چه څه ستا یم
په رښتیا کښ د بل چا یم
دنیا ښیګړه نه وی
نو بیا اووائیم چه ستا یم
ټول فکرونه د دنیا دی
آخرت له په جفا یم
بیمار روح له مې غم نشته
روغ صحت له په دُعا یم
د لحد فکر مې نه وی
څه خپل نفس باندے فدا یم
دا منم چه مې دُشمن دے
خو شیطان ته په خندا یم
په باطن کښ مې بل څه وی
چاته نه وائمه چه دا یم
د رب مینه پکښ نشته
زړه ګبر کړے چه د چا یم
د معراج په عبادت کښ
څه خپل مونځ کښ چه په غلا یم
نعمتونه مې ټول هېر دی
د اشنا نه چه نا اشنا یم

څه دعوې د بندګئی کړم
خو طلب کښ د دنیا یم
زلزلې د زنکدن مې
هسې هېر په خطا یم
نور په وېلو څه پرېږم
خپل نفس ته په ګډا یم
خوشحالو کښ مې ته هېر ئې
په ماتم کښ په ژړا یم
معرفت رڼړا مې نشته
آئینه کښ نا صفا یم
د بقا فِکر مې نشته
خپل چاهت کښ د فنا یم
په نظر کښ مې بل سپک وی
هسې ځانته څه پارسا یم
خپل رب له دوا نه شوم
همېش نفس له په دوا یم
دنیا پسې تل کوچ کړم
بې پرواه څه د بقا یم
بادشاهی خودرویشان کړی
څه د دې دنیا بادشاه یم
هسې واړه تماشا ده
بیمار روح له په دُعا یم

آبادي خو د جنّت ده
ځه د دنیا په تماشا یم
ځه به خوند د زندګئي وی
خپل اشنا نه چه جُدا یم
معرفت د نور مې نشته
د ښاورو بت له په وفا یم
د قرآن دې رنړاګانو
ځه مئین کړے په خُدا یم
ځه د خپل خدائے خلیفه یم
ځه افضل یمه اعلی یم
تیرے دی خبر نه شوم
ناروا که په روا یم
ښه او بد تمیز مې نشته
بے ګناه که په ګناه یم
ځه آمېن د رب په کرم
په أمید کښې د صبا یم

# د الله شکر

ستا د شکر الفاظ نشته
ربه بل مو کارساز نشته
نعمتونو کښې خروب یو
د بیان څه انداز نشته
ستا د مینې سمندر کښې
انتها له جواز نشته
په اُلفت کښې پنځه وخته
زمونږ مینځ کښې غماز نشته
یا صمد خاضر ناظر ئې
ستا په مثل بے نیاز نشته
نعمتونو دولتونو
معلومات د آغاز نشته
د حبیبؐ په خپل معراج له
بل نشیب او فراز نشته
سلیمانؑ تخت په هوا کښې
عجب داسے پرواز نشته
په دنیا او آخرت کښې
بل آمینؔ له نواز نشته

## وکیلانو ته

وروره چه ملګرے ته د غل ډاکو شوکمار نه شے
تل حق وئېل تراخه وی ته خفه په دے ګفتار نه شے
ته خو یو وکیل ئے د وکیل په معنٰی پوهه ئے
خپل د اعتماد پېتے په سر اوړه بے لار نه شے
محنت کښ برکت دے ستا پېشه یو عبادت دے
تل مرسته د مظلوم کړه د ظالم چه مددګار نه شے
خپل سوچ فکر دې واړه مؤکل د پاره خرچ کړه
الله به دې مدد کړی مخالف نه طمعدار نه شے
نعمت د ذهانت درله درکړے پاك الله دے
ښه سوچ وربانده ووکه چه ملګرے د اغیار نه شے
جججانو صاحبانو ته کومه دا یو خواست
مدام کوئے انصاف د حق په لاره خطاوار نه شے
مظلوم لره انصاف ورکول هم کار ثواب دے
هیچرے په تولګی د بے ظمیروکښ چه شمار نه شے
اشنا مې د بارروم ئې څه کومه په تا فخر
په نورالامینؔ وروروخدائے د پاره بے اعتبار نه شے

# عامر چیمه شهید ته سلام

عامره زار شم ستا مړانې او عظمت ته سلام
سلام سلام واېم په تا ستا صداقت ته سلام
ته بو بهادر وې تا ثابته کړه هېرېږې به نه
په رسالت باندې قربان شوې ستا غيرت ته سلام
اُمت په تا د پاك حبيبؐ به همېش فخر کوی
تا چه ننګ کړې ښه ښکاره دې ستا جرأت ته سلام
اُمبارکي د شهادت په محبّت درلېږم
لې د آمېنّ د زړګی توانه ستا شهادت ته سلام

عامر تیری عظمت کو سلام
تیری حد درجے صداقت کو سلام
تم رسالت پر قربان ہوئے
تمھاری پاک شہادت کو سلام
عالم میں بہادر کھلائے
تیری غیرت و شجاعت کو سلام
فخر ٹھرا تو اُمتّی کے لئے
تیری جرأت و عظمت کو سلام
لمحہ لمحہ تیری شجاعت پر
امینّ کی محبت کو سلام

# صحابي اود نن مسلمان

پرون چه دے غلام وو
پنجره کښې دے مُدام وو
چه رستم او رعايا هم
ټول د ويرے بے آرام وو
شاهان او وزيران هم
ستا خپو کښې خاص و عام وو
ټول غير دي خلافت کښې
تابعدار دي ګام په ګام وو
هم اسلحے او طاقتونه
ستا مخکښې ناتمام وو
چه نړئې باندے فاتح وے
ټول اغيار دي په اِکرام وو
ستا په عدل او انصاف کښې
امان دے په قيام وو

اُس محکوم ئے په جهان
اغیار گیر کړے په زندان
ګیدړان درته زمری شو
ته ئے کړلے په لړزان
نن د غیرو غلامي کړی
په نړئي کښ مسلمان
بادشاه دے که وزیر دے
دانا جوړ شولو نادان
چه د دین نه ناخبر شی
شی انسان نه جوړ حیوان
چه پرون دے څوك محکوم وو
نن په تا دی حاکمان
پرون خو ستا مالی وو
اُس مالك د ګلستان
آمین د زړه ژړا ده
راشي باغ باندے خزان

## وجوهات

ته د یو جسم په شان وے
اُس تیتم په کُل جهان ئے
اے د خدائے د دین پلمیانه
چه د ځان شوے پریشان ئے

د خپل نفس په دام کښې ګیر شوې
ته غافله د قرآن ئې
کل جهان ستا دے هسے پوه شه
ته نن جوړ شوے د جهان ئې
مسلمان ته ئې سخت شوے
په دښمن خپل مهربان ئې
چه به تاپسے روان وو
ته هغوی پسے روان ئې

شهادت به دے آرزو وه
اُس د تش نوم مسلمان ئې
د غفلت په خوب اوده ئې
ته ولقه کښې د شیطان ئې
د بقا سفر دے هیر دے
دا ته څنګه مسلمان ئې
د محشر سختئ کړه یاده
عبس ولے په خندان ئې
تل ذلیل او خوار به ګرځے
چه ملګرے د شیطان ئې
خوشحالئ به هله وینے
چه ملګرے د سبحان ئې

جنّتونه به خدائے درکړی
په قدم چه د جانان ئے
صداقت د صدیقؓ خپل کړه
چه پیدا ته مسلمان ئے
ته عادل لکه عمرؓ شه
په نړۍ به حکمران ئے
هم سخی لکه عثمانؓ شه
چه د هر چا په زبان ئے
شجاعت د علیؓ خپل که
مجاهد مردِ میدان ئے
د خالق شه مخلوق پرېږده
د سلاطینو ته سلطان ئے
شه مالك د صفتونو
چه دا وخت په امتحان ئے
د امینؐ صدا صدا ده
پاسه پاسه ته پاسبان ئے
نصیحت
اغیار واړه دشمنان دی
الله وېلی په قرآن دی
هغه خلق خدائے ته ګران دی
چه دنیا کښ مؤمنان دی

چا چه ظلم زیاتی کړې
اخته شوی تل په ځان دی
ګېر نادانه دوستانه کښې
نن څمونږه حکمران دی
نادان دی نه پوهېږی
چه په کوم طرف روان دی
هغه خلق به کامیاب وی
چه نېکئی پله روان دی
د اسلام په دشمنئی کښې
نن پو شوی کافران دی
عېسایان او یهودیان نن
اجل ګېر کړی په مېدان دی
مسلمان په وسائلو
دا ناکامه بدګمان دی
شکستونه مقدر کښې
آمېنؔ وائی په زندان دی

# یاالله

زمکه ځما ده آسمان ځما دے
که ته ځما ئے جهان ځما دے
بغیر لتانه که محبت کړی
دغه زړګے هم نادان ځما دے
د استا په عشق کښې اوښکے بښیږی
بختور جان مې جانان ځما دے
بے ستا د یاده به څه ژوندون وی
په تعریف ستا کښې زبان ځما دے
ښکلا ښکلائے جانان جانان ئے
د ستا دیدار مې ارمان ځما دے
ستا پاکی لوئی او قدرتونه
وائی آمینؔ چه سبحان ځما دے



# مسلمانانو خويندو ته

نمونه ته د حيا ئې ته عزّت د هر يو کور ئې
د حوا لور ئې وفا ئې ،ته لور، خور ئې خوره مور ئې
ته مريم ئې، آسيهؓ، هاجرهؓ ئې لوئې دې شان دې
عائشهؓ ئې، فاطمهؓ ئې د جنّت د خورو حور ئې
غيږه ستا يو درسګاه ده آدم‌زاد دې شاګردان دي
ته رحمت د لوئې الله ئې قدردانه په هر لور ئې
ته بې مثله بې نظيره جنتي ښکلې تحفه ئې
هر نظر په تا خوږېږي په رښتيا د سترګو تور ئې
څه دي ژوندون ته حيرانېږم ته مومنه ئې پوهېږې
آفرين دې په ژوندون شه چه د کور ئې يا د ګور ئې
دا اِحسان په تا د رب دې حُسن، مينه محبّت ئې
د حيا څادر په سر وره څوکه زړونو له تکور ئې
ستا عظمت ته مې سلام، ته رنړا د دې نړئې ئې
ته آمينؔ شاعر را وستې تحبّل ته په خپل زور ئې



# آخری ګزارش

څه آخر کښې بو څو اهمے دعاګانے او د قرآن سورتونه لیکمْ چه په احادیثو کښې د هغے په ویئلو سره ډېر فضائل هم راغلی دی او د آخرت په دائمی سفر کښې نجات هم دے او د ګناهونو دمعاف کېدو او د مسلمانانو د خلاصی بیانات دی د آخرت کامیابی بو لویه کامیابی ده چه کوم خوش قسمته مسلمان د الله په رضا سره د آخرت سفر کښې داخل شی نو هغه بو غتے کامیابئی ته اورسېدو۔ ځکه چه د آخرت کامیابئی او خوشحالئی سمندر دے او د هغے مخکښې ددنیا کامیابئي بوڅاڅکے هم نه دے او هم دغه شان دآخرت پریشانئي سمندر دے او د آخرت د پریشانو مقابله کښې د دنیا پریشانئي بو څا څکے هم نه دے الله پاك دي ماله هم د هغے دزده کولو او دروزانه وئیلو توفیق راکړي او تاسو له هم۔ او الله پاك دے په غټ سفر کښې ما هم کامیاب کړي او پوره اُمّت د پاره دُعا ده چه پوره اُمّت دي الله پاك کامیاب کړي او د کائنات تول اِنسانیت ته دے الله پاك هدایت ورکړی۔ (آمین ثمّ آمین)

د آخرت توشه او د خلاصی بیانات لاندے لیکم۔

۱۔ پنځه وخته مونځ

۲۔ د ازان جواب ورکول۔

چه محمدؐ نوم راشي نو ﷺ وئیل۔

او "حي علي الصلوٰة" په اوریدو سرو "لاحول و لاقوه الا بالله العظیم وئیل.
او د ازان په ختمیدو لاندینئي دُعا وئیل۔

اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِیْلَةَ وَالْفَضِیْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَنِ الَّذِیْ وَعَدْتَّه، اِنَّکَ لَا تُخْلِفُ الْمِیْعَادُ

۳۔ صلوه التسبیح

حضرت عبد الله بن عباسؓ نه روایت دے چه رسول اللهﷺ عباس بن عبد المطلب ته وفرمائیل ۔ اے عباس اے څما تره۔ چه تاته څه د اسے عمل اوښائم چه هغه ته اوکړے نو الله پاك ستا مخکنی او روستنی چه په خطا شوی وی یا قصداً شوی وی واړه او لوی گناهونه، ښکاره پټ ټول گناهونه معاف کوی هغه عمل څلور رکعته صلوه التسبیح دے۔

۴۔ د رمضان المبارك روژے نیول

حضرت ابو هریرهؓ نه روایت دے چه رسول اللهﷺ فرمائی چه څوك د رمضان روژے اونیسی ایمان سره او ثواب او غنیمت ئے اوگڼړی نو د هغه مخکنی او روستنی ټول گناهونه معاف کیږی۔

۵۔ حج چه چاته الله توفيق ورکړې وی

حضرت ابو هريرهؓ نه روايت دے چه رسول اللهﷺ فرمائی چه کوم سړی حج اوکړو او د حج په زمانه د فحش او د فسق نه بچ شو نو هغه خپلو گناهونو نه داسے واپس شی څنگه چه هم نن د مور د خېټے نه پيدا شوی وی۔

۶۔ زکوٰة

زکوٰة سره مال صفا کېږی او مال زياتېږی۔

۷۔ سوره يٰس تلاوت

چه څوك سوره يٰسٓ صرف د الله د رضا د پاره لولی نو د هغه ټول گناهونه معاف کېږی پس دا سورة تاسو په خپلو مړو باندے لولئی۔

۸۔ سوره الم سجده او سوره الملك

دا دواړه سورتونه د عذابِ قبر او د دوزخ د اور نه د خلاصی سبب دے

۹۔ رضيتُ بالله رباً وبالاسلام دينا وبمحمد ﷺ نبيا

رسول اللهﷺ فرمائی چه څوك درے ځله سحر او ماښام دا کلمات وائی نو الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ هغه ته دومره اِنعام ورکړی چه هغه به راضی شی

د پښتنو رونړو په خدمت کښې يو ضروري ګزارش

دسلام آداب۔

۱۔ سلام کښې مخکښې کېدل پکار دی۔

۲۔ که څوک پېژنئی او که نه ئې پېژنئی سلام اچول پکار دی۔

۳۔ د سلام په جواب کښې وعليکم السلام وېئل واجب شی نو دا ضروري ده چه د سلام په جواب کښې وعليکم السلام اووئېلے شی ګنی په ذمه واجب پاتے کېږی مونږه پښتانه د السلام عليکم په جواب کښې پخير راغلے وايو چه پخير راغلے سره واجب نه ادا کېږی۔ لهٰذا دا ضروري ده چه د السلام عليکم په جواب مونږ وعليکم السلام ضرور وايو۔ او د پخير راغلے رواج ختم کړو مزيد معلومات د علماء کرام نه معلوم کړو۔ اللّٰه تعالٰی د ماله هم توفيق راکړي او تاسو له هم۔ آمين ثمّ آمين

## دوېم ګزارش

د تکبير اولی اهتمام

تکبير اولی چه کله امام نېت سره اللّٰه اکبر وائی او مقتدی ورسره اللّٰه اکبروائی دے ته تکبير اولی وئېلے شی۔ تکبير اولی دتولے دنيا او څه چه په دنيا کښې دی دتولو نه بهتر دے څمونږه اکثر جماعتونو کښې اقامت ختم شی خو بعضے څمونږ رونړه آخري صفونو کښې ګپ شپ کښې مبتلا وی۔ او تکبيراولی ضائع شي لهٰذا خواست دادے چه ددے نقصان نه ځان بچ کړو او د تکبيراولی کښې د امام سره شامېلېږو۔

## دریم ګزارش۔

څمونږه اکثر رونږه په جماعت کښ ګپ شپ لګوی یا څه فیصله وی نو اکثر جماعت کښ کیږی چه دا هم دېره د نقصان خبره ده ځکه چه په جماعت کښ دنیاوی خبرو سره نېکئی د اسے سوزی لکه څنګه چه اوچ هشاك په اور سره سوزی لهٰذا مونږ له پکار دی چه خپلے نېکئی د سوزولو نه بچ اوساتو۔

هم دغه رنګے په رمضان المبارك کښ د تراویح په دوران څمونږه کشران شاته ګپ شپ لګوی او امام د قرآن تلاوت کوی۔ دقرآن د تلاوت په دوران کښ هځے هم خاموشه کیدل ضروری دی او بیا په تراویح کښ دشروع نه امام سره شامیلیدل پکار دی چه دا تولے خبرے د الله تعالٰی د رضا سبب دے۔

## څلورم ګزارش

څمونږه اکثر رونږه امام سره په شاته صف کښ د اودریدو کوشش کوی۔ او مخکښ صف ته د تلو کوشش نه کوی۔

کوم قدم چه دصف د پاره اوچتیږی دا قدمونه الله تعالٰی ته محبوب وی

د الله محبت څه معمولی څیز نه دے۔ د الله تعالٰی محبت سره د دوارو جهانو کامیابئی ترلی دی۔ الله تعالٰی دې دا محبت ماته هم نصیب کړې او تاسو ته هم۔ آمین ثمّ آمین

